
دەبڕ ترویج، دەبڕ تبلیغ
اِی.ڤیشر
ژباڕە:ویاڕ

**د پېرتروېج، د پېرتبليغ**

---

اي.فيشر

ژباړه:وياړ

سمون:زيړ افغان

برېښنايي خپرېدنه او بياکتنه: سنبله ۱۴۰۲

---

# لړلیک

# ډېرترویج، ډېرتبلیغ

پانګوالي یوازې د بانکونو، تراستونو[۱]، محکمو، قوانینو، پوځیانو، مالي ځواک او حکومتي نظام له لارې خپله واکمني نه ساتي، بلکې د دې واقعیت پر بنسټ هم حکومت کوي، چې د تبلیغ او ترویج لپاره نږدې نامحدوده وسایل او امکانات په اختیار کې لري. ښوونه، تعلیم او روزنه، علم او هنر، کتابونه او ورځپاڼې، راډیوګانې، سینماګانې او تیاترونه، دا ټول هره ورځ د واکمنې طبقې عقاید د ولسي پرګنو په ذهنونو کې پمپوي. دا هڅې د دې لپاره تر سره کېږي، چې د ستم ځپلو زیارکښو زړونه او ذهنونه خپلې لورې ته وکاږي، منحرف یې کړي، تر برید لاندې یې ونیسي او اېل یې کړي. فاشیستې دیکتاتورۍ خپل تبلیغ زیات او ګړندی کړی او ټول سازونه یې یو ډول ساز او د تبلیغاتي وزارتونو ارکسترونه یې ځورونکې موسیقي غږوي.

زموږ ګڼ شمېر ملګري په خطرناک ډول لېوال دي، چې د غلیمانو تبلیغ او ترویج کم‌ارزښت وګڼي. هغوې د تبلیغ او ترویج چارې ثانوي ګڼي او د دې موضوع د پوهېدو توان نلري، چې په اوسنیو شرایطو کې دقیقاً دا موضوع لاشدیدې او لامتمرکزې پاملرنې ته اړتیا لري. دا د کمونیستي ګوندونو یوه مهمه دنده ده، چې د نویو لارو په کارولو سره هره ورځ د خپلو عقایدو په تبلیغ کولو سره د فاشیزم

---

[۱] تراست د څو شرکتونو له اتحاد څخه  رامینځته کیږي، چې یو شانتې توکې تولیدوي او د بازار عمده ونډه په اختیار کې لري. تراست د غړو شرکتونو ونډه په اماناته توګه ساتي، خو د ونډې مالکیت له شرکتونو سره وي. په تراست کې شرکتونه خپله مالي، فني او سوداګریزه خپلواکي له لاسه ورکوي. د تراستونو اتحادیې ته کنسرن وایي. پښتو.ژ.

مقابله وکړي، هغه فاشيزم، چې هڅه کوي د هر ډول څرګندې او پټې وسيلې په کارولو سره د ولس د ذهنونو خاوند شي.

ولس ته زموږ د عقايدو د رسونې په موخه د هرې شونتيا کارونه او د فاشيستانو او رفورميستانو له استدلالونو سره مقابله، زموږ مهمه دنده ده. د دې لپاره چې په فاشيستي مسمومه فضا کې زموږ د اندونو تازه وږمه ولګيږي، د هر وخت په پرتله اوس تبليغ او بيا هم تبليغ  د کمونيستي ګوندونو مهمه وظيفه ده.

د بلوسګرو فاشيستانو او جګړه مارو په وړاندې د يوې برياليې مبارزې او د رفورميستانو د ويجاړونکو خيالونو په وړاندې د يو بريالي بريد لپاره، يوه ډېره مهمه مخکنۍ اړتيا زموږ دتبليغاتو کمي او کيفي رغول دي، چې ښايي د زياتو کتابونو، زياتو جزوو، زياتو ورځپاڼو، ښو کتابونو، ښو جزوو او د ښو ورځپاڼو د خپرولو له لارې تر سره شي.

# د تبليغ او ترويج منځپانګه

شايد د دې پوښتنې بيا راپورته کول چې په کراتو ځواب شوی، بابېزه ښکاره شي. خو څنګه چې په عمل کې زموږ ځينې ملګري د تبليغ او ترويج په توپير نه پوهېږي او ځينې يې داسې فکر کوي، چې د اوس لپاره بايد تبليغ څنډې ته کړو چې ترويج ته لار خلاصه شي، نو يو ځل بيا دې پوښتنې ته د لنين ځواب راوړو. لنين دا ځواب د پلخانف لخوا د وړاندې شوي تعريف په اړه ليکلی دی:

> «موږ (له پلخانف او د کارګرانو د نړيوال غورځنګ له ټولو رهبرانو سره) تر اوسه فکر کاوه، چې يو مروج، چې مثلاً د وزګارتيا پر موضوع خبرې کوي، بايد د پانګوالۍ د کړکېچ منځپانګه توضيح کړي، په ننۍ ټولنه کې د کړکېچ حتمي رامنځته کېدل وسپېړي او دا تشريح کړي، چې څنګه ننۍ ټولنه بايد هرومرو په يوې سوسياليستي ټولنې بدله شي او...لنډه دا چې بايد «ډېر اندونه» وړاندې کړي؛ دومره ډېر چې يوازې (نسبتاً) لږ شمېر کسان به ورباندې پوه شي. خو يو مبلغ، چې د هماغې موضوع په اړه خبرې کوي، د توضيح لپاره داسې يو واقعيت انتخابوي چې مخاطبان يې په پراخ ډول وپېژني او ورته توپير ولري. د بېلګې په توګه د لوږې له امله د يو وزګار کارګر د کورنۍ مرګ، زياتېدونکې بېوزلي او ... او د دې واقعيت په کاروونې سره «ولس» ته يوازې د يو اند، يعنې د شتمنۍ د زياتېدنې او د بېوزلۍ د ډېرېدنې تر منځ د احمقانه تضاد د ښودلو هڅه کوي. مبلغ به هڅه وکړي چې د دې څرګندې بې عدالتۍ په وړاندې د ولسونو تر منځ قهر او نارضايتي راوپاروي او د دې تضاد بشپړه توضيح به مروج ته پرېږدي.»

تبلیغ او ترویج باید د یو بل بشپړوونکي وي. هیڅ یو نباید د بل په بیه سپک وګڼل شي او یو د بل پر ځای وکارول شي. که ځینې ملګري دا وخت انګېري، چې کله موږ د خلکو د دموکراتیکو آزادیو لپاره مستقیماً تبلیغ کوو، نو ضروري ده چې دا تبلیغ او ترویج د پرولتاریا د دیکتاتورۍ د غوښتنې لپاره محدود کړو، دا ملګري تېروتلي(همدا ډول هغه کسان هم تېروتنه کوي، چې فکر کوي د «ژوندۍ دې وي د پرولتاریا دیکتاتوري!» د شعار له اضافه کولو پرته نشو کولای دې یا هغې مهمې غوښتې لپاره تبلیغ وکړو). آیا اړینه ده چې د متحدې جبهې د جوړونې او د ولسي جبهې د سازماندهۍ په موخه د خلکو تر مینځ د لا ښې لارې پیدا کولو په پار په خپلو تبلیغاتو کې له کمونیزم څخه یو څه کم وغږېږو؟ بر عکس، باید د کمونیزم په اړه، د شوراګانو د ځواک په اړه او د خپلو آرونو په اړه لا زیاتې خبرې وکړو، خو یوازې په مناسبو شرایطو کې. موږ باید د ولس بلاواسطه تجربې، اړتیاوې او غوښتنې د خپل تبلیغ د پیل ټکی وګرځو او پوښتنو ته باید په روڼ او څرګند ډول، بې له دې چې په اوږدو کړکېچنو توضیحاتو او تیوریکو پېچلو موضوعاتو یې لا پېچلی کړو، ځواب ووایو. خو په ورته وخت کې باید خپل سیاست توضیح او دلایل یې روښانه کړو، لرلید یې انځور او دا ښکاره کړو، چې څنګه د پرولتاریا د دیکتاتورۍ لپاره، دا سیاست زموږ له مبارزې سره تړاو لري.

په تبلیغي کار کې د پرګنو د ملموسو چارو، له هغو مسایلو څخه کار اخلو چې د چاودېدونکو توکو بڼه لري او د ولس لخوا په سیده ډول د پوهېدنې وړ دي، لکه د لوږې له امله د یو وزګار کارګر مړینه، د درغلۍ یوه پېښه، د یوې طبقاتي محکمې د مرګوني حکم په شان یوه مسئله او.... موږ پر دې موضوعاتو ټینګار کوو، په داسې حال کې چې عمداً له ډېرو نور مسایلو، چې رسوایي یې کمه ده تېرېږو، خو په ورته وخت کې په خپل ترویج کې ښکاره کوو، چې د لوږې له امله د یو وزګار کارګر مړینه او ورته پېښې په هیڅ ډول ناڅاپي نه، بلکې د پانګوالۍ نښې دي او د

داسې ناتارونو د بې پایه تکرار مخه یوازې هغه وخت نیول کیږي، چې پانګوالي نابوده او سوسیالیسي ټولنه جوړه شي.

موږ باید له دې بد او بې مانا عادت څخه، چې ټول شیان په یوې تبلیغاتي وینا یا مقاله کې ځای پر ځای او ټول استدلالونه او غوښتنې مو په هغه کې کتار کړو، ډډه وکړو. موږ له داسې ویناوو او مقالو سره آشنا یوو، چې له پیل څخه تر پایه پورې له  استدلالونو او غوښتونو ډکې دي، چې د ولسونو د ویښونې او هڅونې په ځای په ډېر احتمال سره هغوې وېده کوي. په تبلیغاتي ویناوو او مقالو کې موږ ټول شیان پر یوه واحد فکر، پر یو واحد شعار متمرکز کوو، چې خپل «تز» له هره پلوه پراخه کړای شوو. البته کولای شو په تبلیغ کې ډېرې موضوع‌ګانې ولس ته ووایو، خو د یو مبلغ هنر دا دی چې په هره شېبه کې هغه څه ووایي چې له ټولو زیات اغېزمن  وي، یوازې هغه مطالب ووایي چې په هماغه ټاکلې شېبه کې بې‌له تفصیلي استدلال څخه ولس راوپاروي.

زموږ د فرانسوي ملګرو دا شعار چې «شتمن اړ کړئ چې دریې کړي» په تبلیغ کې د مهارت ځلاندتیا ده. ولس ته دا شعار د ورځې په شان روښانه دی او بې‌له تفصیلي او اوږدو توضیحاتو د هغوې ذهن ته ننوځي او له بشپړو استدلالونو پرته هغوې معتقدوي او د کرکې بڅرکي یې په لمبو بدلوي. خو په توضیحي کار کې موږ تل وایو چې باید د موضوع په هکله لامخ ته لاړ شو او دا توضیح کړو، چې یوازې د پرولتاریا دیکتاتوري، یوازې شورایي ځواک کولای شي د تل لپاره د زیارکښانو اړتیاوې پوره او ببوزلي  یې پای ته ورسوي. دا وخت ډېري ولسي پرګني د دې اندونو په اړه شکمن او ان منفي فکرونه لري، خو زموږ تبلیغ او ترویج د دې منل باید هغوې ته اسان کړي. نو موږ باید تل ترویج او تبلیغ د یو بل بشپړوونکي

وګرځوو، د هغوې تر منځ اړیکه په سمه توګه ټینګه او دواړه د پرمختیا تر څنګ بډایه کړو.

# له چا سره خبرې او د چا لپاره ليکل کوو؟

لومړنۍ پوښتنه چې له ځانه يې بايد وکړو:له چا سره خبرې او د چا لپاره ليکل کوو؟ آيا مخاطبين مو ګوندي ملګري دي، که غيرګوندي کارګران او يا د نورو ګوندونو غړي؟ آيا له هغو کارګرانو سره خبرې کوو، چې موږ پېژني او پر موږ باور لري، يا مخاطبين مو هغه زيارکښان، هغه دهقانان او خپلواکه کسبګران او روڼاندي دي، چې پر موږ لا اعتماد نلري؟ آيا ټولو زيارکښو ولسونو ته، که يوې ځانګړې طبقې او ځانګړو ډلې يا پوړ لپاره مشخصه وينا ليکو؟ آيا کومه ځانګړې مقاله د ځوانانو لپاره ليکو، که په يوې سترې صنعتي سيمې کې د کارګرانو او يا د هقانانو لپاره؟ مخاطبين مو څوک دي، څوک بايد زموږ له کليمو اغېزمن شي او کومه ځانګړې پايله بايد تر لاسه شي؟ دا لومړنۍ پوښتنه ده، هغه پوښتنه چې اکثراً يې څوک نه کوي او ځواب يې هم نه ورکول کيږي. شته داسې کسان، چې په ولسي ناستو کې هماغه ويناوې کوي، چې په ګوندي سيمه ايزو کنفرانسونو کې يې هم کوي؛ د ځوانانو په غونډو کې کټ مټ هغسې خبرې کوي چې له زړو او سپين ږيرو فعالينو سره يې کوي او... په ټوليز ډول هغوې له خلکو سره ژوندې خبرې نکوي، بلکې له هغه مجرد مخاطب سره غږيږي چې بايد د ويناوالو له اندونو څخه د اغېزمن کېدلو په پار په خپله زحمت وګالي، د دې په ځای، چې ويناوال زحمت وباسي، چې د اورېدونکو ذهنونه په خپلو عقايدو اغېزمن کړي. دا هغه ويناوې او مقالې دي، چې احتمالاً د نړۍ د تاريخ د آرشيفونو لپاره ليکل شوي دي، يا د هغو ملا نقطيانو لپاره، چې پر هر څه نيوکه کوي او يا هم د عالمانو او دانشمندانو لپاره، نه د هغه ولس لپاره، چې د دې مقالو او ويناوو مخاطبان بايد واوسي. له تيوريکه پلوه پر دې ډول زياتو ويناوو او مقالو نيوکه نشو کولای؛ هغوې يوازې يوه کوچنۍ نيمګړتيا لري، لوستونکې يې له لوستلو وروسته بې تفاوته پاتې کېږي او هيڅ ډول

غبرگون يې نه راپاروي. دا کافی نه ده، هغه څه چې وايو اشتباه ونلري، بلکې داسې يې بايد ووايو، چې په ځانگړو شرايطو کې پر خاصو ډلو، پوړونو او پر ولسي پرگنو اغېزه وکړي.

زموږ مبلغين او مروجين بايد د گويته دا خبرداری، چې «فکر وکړه چې څه ووايئ، خو له دې زيات په دې فکر وکړه چې څنگه يې ووايئ» په ياد ولري. د دې لپاره چې دا خبرداری په بشپړه توگه په پام کې ونيول شي، نو بايد په دې پوه شوو چې له چا سره خبرې کوو، د چا لپاره ليکل کوو؛ کوم موضوعات مو لوستونکي او اورېدونکي راپاروي او له ټولو مهمه په اوسنيو شرايطو کې د کومو پوښتنو د ځوابونو په لټه کې دي، په کومو ناسمو استدلالونو يې ذهنونه ورډک کړي او کوم ټولنيز او سياسي چاپېريال ورباندې اغېزه لري.اړينه ده چې د خلکو هيلې او اړتياوې، اميدونه او اندېښنې د پيل ټکی وگرځوو، نه هغه تزونه او پرېکړې، چې لا هڅه کوو پر سموالي يې خلک باورمن او د پلی کېدلو لپاره يې راجلب کړو.

ملگري ديمتريوف د کمونيستي انترناسيونال اومې کنگرې ته په خپلې اختتاميه وينا کې پر هغو کمونيستانو، چې ساده او مشخص غږېدلی نشي او د ولس لپاره ملموس او د پوهېدو وړ انځورونه کارولی نشي او د حفظ کړي انتزاعي فورمولونو کارول بندولی نشي، په کلکه نيوکه وکړه. ملگري ديمتريوف وويل:

> «زموږ گڼ ملگري داسې انگېري، چې هر څومره ولس ته اوږده پرپړه ووايي او د نه پوهېدو وړ فورمولونه او تزونه[۲]

---

[۲] ديالکتيک ماترياليزم په دې باور دی چې هره ښکارنده له دوو اضدادو(تز او انتی تز) جوړه شوې. دا اضداد د ښکارندې د حرکت او بدلون لامل کېږي. هر کله چې «انتی تز» غالب شي، نوې ښکارنده، چې «سنتز» ورته وايي رامينځته کېږي.

وکاروي، نو تهییج او تبلیغ به یې ګټور وي. خو دوې هېروي، چې زموږ په عصر کې د کارګرې طبقې سترو رهبرانو او تئوریسنانو، یعنی لنین او ستالین، به تل په بشپړه ولسي ژبې خبرې او لیکل کول، هغه ژبه چې پراخو ولسي پرګنو ته د پوهېدو وړ وه. موږ باید هر یو دا یو قانون، یو بلشویکي قانون، یو لومړنی قانون وګڼو چې:د لیکلو یا خبرو پر مهال تل باید عادي کارګران په پام کې ولرو، باید زموږ په خبره پوه شي، پر غوښتنه مو باور وکړي او له موږ څخه د پیروۍ لپاره چمتوالی وښیي! باید هغه څوک په پام کې ونیسو، چې لیکل او خبرې ورته کوو.»

دا یو تاریخي واقعیت دی، چې د ټولو مهمو مسئلو په تړاو حقیقت له موږ کمونیستانو سره دی، خو ولس باید په دې موضوع باورمن کړو. یوازې هغه وخت موږ په حقه پاتې کیږو، چې نه د لنډاکه اصولي افرادو په څېر، بلکې د واقعي

---

په دیالکتیکي بدلون کې «تز»د «انتی تز» په وسیله نفی کیږي او «انتی تز» هم په یو «سنتز» نفی کیږي، خو نوې ښکارنده («سنتز») د پخوانۍ په پرتله نوې او کامله ده. په بله وینا هر «تز» خپل نقیض چې «انتی تز» دی رامنیځته کوي، چې د دې دواړو د تضاد له کبله یوه بله ښکارنده، چې «سنتز» نومیږي، رامینځته کیږي.

که په اند او فکر کې دا اړیکه په پام کې ونیسو، نو ویلی شوو چې یو ځانګړی لومړنی اند او فکر ته «تز» ویل کیږي، په بل اند او فکر د دې لومړني اند او فکر نفی ته «انتی تز» وایي او «سنتز» هغه وخت رامنځته کیږي چې د دوو متضادو مخکنیو اندونو («تز» او «انتی تز»)یوه ځانګړې پایله د نوې اند او فکر په توګه، چې د پخوانیو په پرتله پرمختللې او مکمله ده رامنځته شي. پښتو.ژ.

مروجينو او مبلغينو په توګه هغوی ته نژدې شوو. په دې باید پوه شوو، چې د پرګنو د ژبې زده کول زموږ دنده ده، نه دا چې پرګنې دې زموږ ژبه همدا نن زده کړي.

# نوې ژبه

په ډېرو مصوبو کې دا موضوع، چې«باید په نوې ژبه خبرې وکړو!»، په ډاګه شوې ده، خو پلی کېدل يې پخ روان دي. دا د نوې ژبې مسئله، هغه ژبه چې میلیونونه انسانان مبارزې ته هڅوي، يوازې د سبک مسئله نه ده، بلکې له هر څه لومړی د لورلید موضوع ده. د کمونيستي انترناسيونال يو ګوند په دې اړه يوه بېلګه رامنځته کړی ده. د فرانسې کمونيست ګوند هغه ګوند دی، چې په يوې بشپړې نوې، ځواکمنې او شتمنې ژبې باندې خبرې کوي.

دا کومه ژبه ده؟ زموږ فرانسوي ملګري په رښتيا هم د خپل ولس په ژبې، د فرانسوي وګړو په ژبې، په خپلې پخوانۍ بډایه ژبې، د ولتر[3] یا د دُنی دیدرو[4] په ژبې، د انقلاب په ژبې، د واقعیت په ژبې او د حال په ژبې خبرې کوي.

موږ څنګه کولای شوو دا ولسي ژبه، دا د وګړو ژبه زده کړوو؟ د تړلو دروازو او کړکیو تر شا یې زده کولای نشو. یوازې د دروازو او کړکیو په بشپړه پرانیستلو او د

---

[3] فرانسوا ماری آروئه(ولتر)(۱۶۹۴-۱۷۷۸)د فرانسې د روښانتیایي پېر د نومیالیو فیلسوفانو او لیکوالانو له ډلې څخه دی. هغه له کاتولیک کلیسا سره د مخالفت، له مذهبي آزادۍ څخه د ملاتړ او له سیاست څخه د دین د جلاینې لپاره مشهور و. په ۱۷۱۵ کال کې د دویم فیلیپ په ضد ځینې شعرونه وویل، چې د هغو له کبله یې په باستیل کې بندي کړ.

[4] دُنی دیدرو (۱۷۱۳ـ۱۷۷۴) د فرانسې د روښانتیایي پېر فیلسوف او لیکوال و. په ۱۷۴۶ کال کې یو کتاب ولیکلو، چې د مسیحي عقایدو ضد له امله د پارلمان د پاریس لخوا ټولې نسخې یې وسوځول شوې. دیدرو په ۱۷۴۹ کال کې «د یو ړوند لیک» کتاب کې د خدای د شتون په اړه پوښتنې مطرح کړی او له همدې کبله درې میاشتې بندي شو. دیدرو یوځای لیکي: «د تعصب او بربریت تر منځ واټن تر یو ګام زیات نه دی.» پښتو.ژ.

هغې تازه هوا ورړمو ته، چې ولسي پرګني يې تنفسوي، په اجازې ورکولو سره يې زده کولای شوو. هغه وخت يې زده کولای شوو، چې د خپل هېواد او ولس د برخليک او راتلونکي په اړه خپل مسووليت احساس کړو.

دمګړۍ د«۲۰۰ کورنيو په وړاندې د ولس د پيوستون» لپاره زموږ د فرانسوي ملګرو تبليغ له يوې ځلاندې سبک لرونکې هجا زياته ده:«موږ فرانسه يوو، دفرانسې ولس او هېواد يوو، موږ کمونيستان د ولس، د هېواد د پايېدنې، د هغه د کلتور او د بې پايه بډاينې قاطع او جدي مدافعين يوو، زموږ هېواد د څو سوه کورنيو په لاسونو، چې د پانګوالۍ د زبېښاک ښکارندويې دي، لوټل کېږي. موږ يوه ګوښه شوې ډله نه يوو، چې د ترټلو دروازو تر شا په بحث اخته ووسو، موږ د ولس زړه او ماغزه يوو، هغه ګوند يوو، چې يوه ورځ به فرانسه وي.» دا ډول تبليغ د يو ستر او اصيل احساس ځلا ده او داسې نوې ژبه له يوې نوې تاکتيکي طريقې څخه سرچينه اخلي.

ډېر داسې شيان شته چې له فرانسوي ملګرو، له فرانسوي ولسي ترانو او د فرانسوي ادبياتو له استادانه پنځونې يې بايد زده کړو. د فرانسويان د هېواد ځلاند لمر او د انقلابي تاريخ ځلانده رڼا د هغوې ژبې ته لار مومي. کله چې «تورز»[٥] په کنګره کې خپله وينا د وچو تحليلونو پر ځای د فرانسې ژبې د حيرانونکې ښکلا او بډاينې په ستايلو پيلوي، د فرانسې د کمونيست ګوند ژبه او دريځ څرګندوي.

---

[٥] موريس تورز (۱۹۰۰ـ۱۹٦٤) د فرانسې د کمونيست ګوند(۱۹۳۰ـ۱۹٦٤) رهبر و. هغه د يوې لنډې مودې لپاره د سکرو کان کارګر و. تورز وتوانېد چې د فرانسې کمونيست ګوند له يوې فرقې څخه په يو ولسي تشکيلات بدل او په همدې وياړ د ګوند عمومي مسوول شو. پښتو.ژ.

په نورو کمونیستي گوندونو کې زموږ ملگرو هڅه کړې، چې په تصنعي ډول په اصطلاح نوې ژبه وزېږوي، هڅه یې کړې خپلې ویناوې او مقالې په هغو کلیمو او عبارتونو سینگار کړي، چې فاشیستان یې کاروي. د دې پر ځای چې د اړتیا وړ شیان د خپلو خلکو د شتمنې ژبې له سرچینې واخلي، کوښښ یې کړی، چې خپله ژبه د دښمن له ژبې سره منطبق کړي. دا یو غلط او خطرناک درک دی.

په المان کې له دې څه غلط کیداې نشي، چې د هیتلر او گوبلس[٦] د کرکجنې ژبې ځینې عبارتونه وکارول شي. بالعکس، موږ باید د دهقاني جگړو ژبه او ولسي ترانې زده کړو، د لیسینگ او گوته[٧]، بوشینه او هانیه[٨] ژبه، د المان د پرگنو شتمنه او ازاده

[٦] پاول یوزف گوبلس(۱۸۹۷ - ـ۱۹۴۵)د المان ناسیونال سوسیالیست سیاستوال و، چې له ۱۹۳۳تر ۱۹۴۵ پورې یې د دریم رایش د اطلاعاتو وزارت مسئولیت په غاړه درلود او د آدولف هیتلر له مرگ وروسته د دې واکمنۍ وروستی صدراعظم گڼل کیده. گوبلس په ۱۹۲۴ کې د نازي گوند غړی شو او په برلین ایالت کې د گوند ریاست ته ورسید.هغه وتوانېد چې په لنډه موده کې د وخت ټولې رسنۍ همغږې او د خپل کنترول لاندې راولي. گوبلس د سیاسي تبلیغاتو لپاره د یوې رسنۍ په توگه د فلم ځواک او قدرت ډېر ژر وپېژندو او په عمومي افکارو کې د اغېزې لپاره یې ترې ډېره گټه واخېستله. پښتو.ژ.

[٧] گوتهلد لیسینگ(۱۷۲۹-۱۷۸۱)د المان د روښانتیایي پېر فیلسوف، ورځپاڼه لیکونکی، هنري کره کتونکی او لیکوال و ،چې کارونو یې د المان د ادبیاتو پر بډاینې خورا زیاته اغېزه درلودلې ده.

یوهان ولفکانگ فون گوته(۱۷۴۹ - ۱۸۳۲) الماني شاعر، ادیب، لیکوال، نقاش، څېړونکی او فیسلوف و. «فائوست» د هغه یوه بریالۍ پنځونه گڼل کیږي، چې په کې اصلي شخصیت د بریالیتوب او شهرت په خاطر خپل روح په شیطان پلوري، دا ډول پنځونه د خلکو تر مینځ د کلیسا او مذهب پر ضد څرگندونو، بدل شول. پښتو.ژ.

ژبه زده کړو. له دې باید ونه ډاریږو، چې تېروتنه وکړو.بې‌له تېروتنې یې یادولی نشو. په دې اړه باید بحث وکړو. شاید کله نا کله سم لحن غوره نکړو، خو که د پربکړه لیکونو په وچې او ستومانه کوونکی ژبې خبرې ونکړو، بلکې د ولسونو په ښکلې او ژوندۍ ژبه وغږیږو، نو موږ به درک کړي.

[8] کارل جورج بوشنیه (۱۸۱۳ـ۱۸۳۷) الماني شاعر او لیکوال او د المان د ځوان غورځنګ فعال و. هغه یو انقلابي لیکوال و، که څه هم لیکنې کمې دي، خو په المان کې ورته په درناوی کتل کیږي.

هاینریش هاینه (۱۷۹۷ـ۱۸۵٦) الماني شاعر، لیکوال او د ادبیاتو کره کتونکي و. هاینه د المان د ځوان غورځنګ غړی و. رادیکال سیاسي لیددود یې لامل شوی و، چې الماني چارواکي یې ډېر آثار ممنوع کړي.

# د هرڅه په اړه غبرګون خو چټک غبرګون

موږ باید د هر هغه څه په اړه، چې د ولس احساس راپاروي او خلک ورسره لېوالتیا لري، غبرګون وښیو، هغه هم چټک غبرګون. په دې برخه کې باید له فرانسوي ملګرو، د هغوی د کنګرې له بېلګې، د هغوی له ویناوو او د هغوی د مرکزي ارګان له«اومانیته» څخه زده کړوو. په ټولنیز ژوند کې داسې یوه مسئله هم نشته چې هغوی یې په اړه بې تفاوته پاتې شي. څومره ناسمه ده، چې یو کمونیست ووایي «دا ما پورې اړه نلري» نه، ټول شیان موږ پورې اړه لري، که له اقتصادي چارو سره تړاو ولري، که له ښوونځي سره او که له بهرني سیاست سره، که له کورنۍ سره، یا د بهرنیو تادیاتو له بیلانس سره یا هم له کلتوري زوال سره.

زموږ تبلیغ او ترویج باید بېلابېل ډولونه ولري، هر اړخیز وي او پراخې برخې راونغاړي او یوازې د خلکو اقتصادي غوښتنې نه، بلکې د هغوی هره غوښتنه په پام کې ونیسي. موږ کمونیستانو هوډ کړی، چې نړۍ له سره جوړه کړو، نو د هر هغه څه په اړه، چې په پانګواله نړۍ کې پېښېږي، خپل نظر او باور لرو. کله ناکله ځینې مسئلې په ظاهره فرعي ښکاري، خو داسې مسئلې چې پر ولس په سیده توګه اغېزه کوي، باید د تبلیغ لپاره وکارول شي. د بېلګې په توګه پر غلاتو د نویو مالیاتو د وضع کولو پر ځای، شوني ده چې یوه بشپړه مفتضحه محاکمه، د بیرغ مسئله یا د یو فلم نندارې، د ولس تر مینځ د زیاتو او مستقیمو پارولو لامل شي.

زموږ تبلیغ باید د کُلي آرونو پر ځای د ژوندانه له شته واقعیتونو راوپنځول شي.دا په ځانګړې توګه زموږ د سیمه ایز تبلیغ په اړه صدق کوي.په یوه ولسوالۍ کې، په هغه هېواد کې چې هلته زموږ ګوند غیر قانوني دی، دوه ماشومان له لوږې مړه شول، خو زموږ د ګوند سیمه ایزې ورځپاڼې د جاپان په اړه سرمقاله خپره کړه. یوه

بله بېلگه له يو فاشيستي هېواد څخه په پام کې نيسو. په يوې سترې کارخانې کې کارگرانو يو اعتراضي اعتصاب پيل کړ، خو سيمه ايزې کميټې د دې اعتصاب راپور په وروستې پاڼه کې چاپ کړ او نورې ټولې پاڼې يې کلي سياسي چارو ته بېلې کړې وې. دا د تبليغ ضعيفه ډولونه دي. موږ د هغو مسئلو په اړه چې پارونکي دي، هغه مسئلې چې په ځانگړو شېبو کې ولس اندېښمنوي او ځوروي، بايد بې له ځنډه وغږېږو، ان که د دې خطر منلو ته اړ شو، چې شونې ده، دريځ مو سل په سلو کې سم نه وي.

د دې تر څنگه، چې د ورځې ټولو مسئلو ته په چټکۍ سره غبرگون ښکاره کوو، ليکنيز کلام ته بايد زيات ارزښت ورکړو او شفاهي تبليغ هم کم ارزښته ونه گڼو. زموږ ځينې ملگري انگېري، چې د يوې اعلاميې په بيړه چمتو کول د تبليغ پرتمينه څوکه ده او همدا چې اعلاميه وليکل شي، نو د گوند دنده تر سره شوې ده. دا د مستقيم، خولې په خولې او له  يو کس څخه بل کس ته د ژوندي تبليغ د ارزښت کم گڼل دي. د اعلاميې خپرول ضروري دي، که چېرې په بل ډول ونشو کړای خلکو ته لاسرسی ولرو او يا اړتيا وي چې پراخه ولسي پرگنې له يوې چارې په چټکۍخبر او د گوند په دريځ يې پوه کړو، خو اعلاميه نشي کولای د شفاهي تبليغ يا د ورځپاڼې يا جزوې ځای ونيسي.

په ځانگړې ځيرتيا سره بايد شعارونه غوره کړو. له شعارونو اوږده لړۍ جوړه نکړو. ولس نبايد د شعارونو له اوږده لست سره مخامخ کړو، دا کار يوازې مغشوشتيا رامنځته کوي او د هر بېلابېل شعار ضربتي ځواک کموي. زموږ تبليغ نبايد يوډول او ستومانه کوونکی لحن ولري. بايد د زيارکښو د ټولنيز ژوند بېلابېلې بڼې، گټې او اړتياوې په پام کې ونيسي او په نه ستومانه کېدوونکي جديت او په دوامداره توگه، لکه د څټک د گوزارونو په شان د ولس د پوهې منځ ته ولېږدول شي، داسې چې

له اغېزې يې څوک خوندي پاتې نشي. د دې څواکمنتيا د لاسته راوړلو لپاره زموږ شعارونه بايد مستقيماً د ولس لپاره د پوهېدنې وړ وي. بايد د هغوې له سترو هيلو سره تړاو ولري. پېچلي او دوه اړخيزه شعارونه بايد ورنکړی شي.

بايد د دښمنانو له تبليغاتي تجربو څخه زده کړو. خو په هيڅ ډول شرايطو کې له هغو ابهامي عناصرو څخه، چې غالباً فاشيزم يې کاروي نبايد استفاده وکړو. په روسيې کې د فبروري انقلاب وروسته د بلشويکانو شعار، «ډوډۍ، سوله، آزادي» د کمينترن ځينو برخو ته يوه بېلګه ده.زموږ د فرانسوي ملګرو دا شعار «شتمن اړ کړئ، چې درېې کړي» هم همدا ځانګړنه لري.

زموږ شعارونه بايد روښانه او ساده او د هر چا لپاره، ان که له سياسي پلوه مجرب هم نه وي، د پوهېدلو وړ وي. دا شعارونه بايد واقعاً د پلی کېدو وړ وي، په هغه راتلونکې کې د پلی کېدو وړ وي، چې ډېر لېرې ونه برېښي. شعارونه بايد ولس ته عملي ښکاره شي؛ هغه شعارونه، که هرڅومره هم زموږ له کړنلارې سره نه پرېکېدونکی تړاو ولري، خو چې مخاطبو ولسونو ته د پوهېدلو وړ نه وي او يا غير عملي وي، بد شعارونه دي. ډلپالنه به وي، چې داسې شعارونه ورکړو او ځان په دې ډاډه کړو، چې« ولس که نه پوهېږي، دا د هغوې نيمګړتيا ده، موږ له تاريخي پلوه په حقه يوو، نه هغوې چې موږ ته غوږ نه نيسي.» زموږ د ترويج او تبليغ موخه د ولسونو متقاعدول دي، البته عالي به وی که ولس همدا اوس چمتوالی ښودلی وای، چې د پرولتاريا د ديکتاتورۍ لپاره په مستقيم ډول اقدام وکړي، خو څنګه چې دې عمل ته چمتوالی نلري، نو بايد په لومړيو کې داسې شعارونه ورکړو، چې ولس مبارزې ته وهڅوي. که داسې شعارونه ورکړو چې په خپل ذات کې سم، خو انتزاعي وي او له لېرې راتلونکې سره تړاو ولري او د ولس له اړتياوو سره

مستقیمه اړیکه ونلري، دا بد تبلیغ دی. ښه تبلیغ دا دی، چې د ولس هیلې او د
ګوند اراده په څو لنډو، ساده او مانادراه جملو کې ووایو.

# د غلیم د استدلالونو ناسموالی ثابت کړئ!

زموږ تبلیغ له هغو دندو او امکاناتو څخه تر اوسه ډېر وروسته پاتې دی، چې ګوند ورسره مخامخ دی. پراخه ولسي پرګنې په حرکت راغلې دي، هغوې د زړې پانګوالې نړۍ په نه پایښت او په نه اعتبار پوه شوي دي. هغوی د کړکېچ او د جګړې له خطر څخه د وتلو په لټه کې دي. زړونه یې، ذهنونه یې له هر وخت نه ډېر د نوې وضعې په تمه دي. هغوې د شوروي سوسیالیستي جمهوریتونو اتحاد او کمونیزم ته، له هره وخته ډېر لېوال دي. هغوی سلګونه پوښتنې لري او غواړي چې سلګونو پوښتنو ته یې ځوابونه ووایو، خو هغوې یوازې موږ ته غوږ نه نیسي، «د روح تاړاکګرو» فاشیستانو ته هم غوږ ږدي.

ولس نوي شیان غواړي، هغه ځواکمن شیان، چې پر راتلونکي یې اغېزه وکړای شي. نو له هر وخت څخه ډېره مهمه ده چې له ځواکمنو تبلیغاتو سره د ولس ټولو پوښتنو ته ځوابونه ووایو او د غلیمانو د استدلالونو ناسموالی ثابت کړو.د هغوی لپاره چې مرستې ته اړتیا لري، باید پراخ ډګر پرانیزو.

کله له دې احساس څخه خلاصېدل ناشونې دي، چې موږ په ټاکلې تاریخي شېبې کې خپل رول او د دندو ستروالی په سمه توګه درکولای نشو. میلیونونو خلکو موږ ته غوږ ایښی، خو موږ ډېر لږ څه د ویلو لپاره ورته لرو. موږ باید د ټولو هغو کسانو ګډون، چې له موږ سره هم باوري دي او یا د دې باور پلویان دي، ترلاسه کړو.د ټولو هغو کسانو ګډون لاس ته راوړو، چې د لیکلو توان لري او په نوښتګره ډول هغه څه بیانولی شي، چې موږ د هغه لپاره جنګیږو. نو باید د کتابونو، رسالو او ورځپاڼو یو بشپړ پوځ جوړ کړو او په مرسته یې د غلیم له وېرووونکو تبلیغاتو سره مقابله وکړو. باید د شوروي د جمهوریتونو د اتحاد لپاره تبلیغ وکړو، خو نوی او

ژوندی تبلیغ. نړیوالو ته ووایو چې څنګه د سوسیالیستي شوروي د جمهوریتونو د اتحاد ملتونه ژوندي او راویښېږي او هلته ځوانان څرنګه ژوند کوي، پرولتري دموکراسي څنګه پراختیا مومي. نوی اتل انسان څنګه رازېږېږي، څنګه له کوچنیتوب څخه بلوغ ته رسیږي؛ دا ټول باید د پرېکړه لیکونو او رسمي ګزارشونو په ستومانه کوونکې ژبې نه، بلکې د ژوندیو تجربیاتو په ژبه، په هغه ژبه چې شتمنه او بډایه ده، ووایو. باید د جګړې ضد کتابونه ولیکو، د ولسي جبهې په اړه، د دموکراسۍ په اړه، د کمونیستي انترناسیونال د مرام په اړه او له ټولو زیات د خپلو اصولو په اړه، د شوراګانو د ځواک په اړه، د کمونیستي نړۍ لید په اړه باید کتابونه ولیکو. د تاریخ منځپانګې ته باید پام وکړو او له پنډ قلم او ځلانده رنګونو سره د کمونیزم په لور د بشر لاره، د ښادۍ او آزادۍ، د خلاق کار او د ورورولي د ټاټوبي لپاره د بشر مبارزه انځور کړو. په داسې حال کې چې د نوې نړۍ په درشل کې ودرېدلي یوو، باید په زړورتیا د دې نوې نړۍ له پرتم او بډاینې څخه وغږېږو. باید تر ټولو لومړی او له ټولو زیات هغه ځوانان راجلب کړو، چې فاشیزم هڅه کوي د خپلې ایدئولوژۍ تر اغېزې لاندې یې راولي.د فاشیزم ایدئولوژي د زوال او نابودۍ تر سیورې لاندې پټه شوې او د فساد نښې نښانې پکې ځلېږي. دې ایدئولوژۍ تر یوې کچې ځوانان اغېزمن کړي او ښایي په ضد یې جدي او بیرحمانه مبارزه وکړو.

# د ذهن او حواس کارونه

تبلیغات نباید په عامي ګرئ بدل کړو.په ولسي میتینګونو کې د پارولو لپاره کولای شوو په یوه مسخره داستان دښمن وځپو. خو په تبلیغاتو کې باید ټولو استدلالونو ته، په لومړي پړاو کې هغه استدلالونو ته ځوابونه ووایو، چې تر ټولو زیات اغېزه لري او جدي ګڼل کیږي. ځینې مبلغان ځان له په خپله دښمن جوړوي، بیا له متن څخه ځینې نقل قولونه راوباسي، هغه سره ځیرې ځیرې کوي او فکر کوي چې د دښمن کار یې ختم کړی دی. دوې اغلب معکوسه پایله تر لاسه کوي.البته موږ باید د خپل دښمن شوده توب بربنډ کړو، خو لومړی باید د دښمن پر هغو استدلالونو تمرکز وکړو، چې پر خلکو واقعاً اغېز کوي. د دې کار لپاره باید موږ د لوستونکي ذهن ته لار پیدا کړو، خو یوازې په دې هم نشو کولای د د ښمن ایدیولوژیک دریځ ولړزو، تر څنګ باید د لوستونکي احساس هم راوپارو.

دا لویه تېروتنه ده، چې فرض وکړو ډېرئ مسائل له مخکې پېژندل شوي او څرګند دي. ډېر وخت موږ هغه شیان «څرګند» ګڼو، چې له نورو زیات لوستونکو ته فکري ستونزې پیدا کوي، دا هغه شیان دي چې توضیح یې زموږ لومړنۍ دنده ده. د هر کتاب او هرې جزوې په خپرولو کې باید په پام کې ولرو چې دا شاید ډېرو کسانو ته زموږ د عقایدو د بیانولو لومړنی کتاب یا لومړنۍ جزوه وي. د لومړني کتاب یا جزوې له لوستلو وروسته شونې ده، هغوی وغواړي چې زموږ په اړه نور هم پوه شي، خو په نهیلي سره به ووایي:«دا یو ډول مرموزه ژبه ده، چې ورباندې نه پوهېږو.»

زموږ د تبلیغاتو هر محصول باید پر خپلو پښو ودرېږي، باید تاند، هراړخیز او د پوهېدلو وړ وي. باید تل په پام کې ولرو، چې دا مهال زموږ د تبلیغاتو مخاطبین

ګڼ شمېر غیر مارکسیستان دي، چې زموږ د عقایدو له بېلابېلو برخو څخه مبهمه پوهه ولري. دوی شاید زموږ هر عبارت تر ذره‌بین لاندې و نه ارزوي، خو په څرګنده توګه احساسوي، هغه څه چې ورته وایو ځواکمن، ژوندي او نره دي او که یوازې د هغو زړورو او سترو کمونیستي عقایدو، چې د نړۍ د بدلولو په لټه کې دي، یو دګم او مړڅپن انعکاس دی. موږ باید دا نوي خلک، چې موږ ته غوږ ږدي، په پام کې ونیسو او باید په نوې ژبه خبرې وکړو چې نه یوازې د پوهېدلو وړ وي، بلکې پارونکي هم وي.

سترې دندې او ستر امکانات مو مخې ته پراته دي، د دې دندو د پلي کېدو او د دې امکاناتو د بشپړه کاروولو لپاره باید خپل تبلیغات تر وروستي بریده زیات او پیاوړي کړو. زموږ د غږونو اوچت او روښانه فریادونه باید له بېوزلو سره مرسته وکړي، متزلزلو انسانانو ته ثبات ورپه برخه کړي او مبارزین په هوډیالي قاطعیت سمبال کړي. مناسب تبلیغ به د پانګوالۍ د درواغو دیوالونه ړنګ کړي، نو ملګرو:

**ډېرترویج، ډېرتبلیغ!**

د بلوسګرو فاشیستانو او جګړه مارو په وړاندې د یوې بریالۍ مبارزې او د رفورمیستانو د ویجاړونکو خیالونو په وړاندې د یو بریالي برید لپاره، یوه ډېره مهمه مخکنۍ اړتیا زموږ دتبلیغاتو کمي او کیفي رغول دي، چې ښایي د زیاتو کتابونو، زیاتو جزوو، زیاتو ورځپاڼو، ښو کتابونو، ښو جزوو او د ښو ورځپاڼو د خپرولو له لارې تر سره شي.

موږ باید د هر هغه څه په اړه، چې د ولس تر منځ احساس راپاروي او خلک ورسره لېوالتیا لري، غبرګون وښیو، هغه هم چټک غبرګون.

موږ څنګه کولای شوو دا ولسي ژبه، دا د وګړو ژبه زده کړوو؟ د تړلو دروازو او کړکیو تر شا یې زده کولای نشو. یوازې د دروازو او کړکیو په بشپړه پرانیستلو او د هغې تازه هوا وږمو ته، چې ولسي پرګنې یې تنفسوي، په اجازې ورکولو سره یې زده کولای شوو. هغه وخت یې زده کولای شوو، چې د خپل هېواد او ولس د برخلیک او راتلونکي په اړه خپل مسوولیت احساس کړو.